احمد شاملو

# زما اندېښني

ژباړه:ویاړ

د ایران د چارو د شنني او څېړني د مرکز
په اتم کنفرانس کې د احمد شاملو وینا

(د ۱۹۹۰ کال اپریل، برکلي، کلیفرنیا)

**دٌنی دیدرو:**

**د تعصب او بربریت تر مینځ یو ګام واټن دی.**

له ارزونې، پلټنې او څېړنې پرته د هنري، فرهنګي، ادبي، سیاسي او فلسفي فکرونو او ګروهې منل او د هغه لپاره بل څوک چار ماري کول یا رټل، تعصب دی. د علمي لیددود او ګروهې د بډاینې لپاره اړینه ده، چې ټولې ښکارندې او پدیدې له تعصب پرته د علمي او منطقي ارزونې وروسته رد یا ومنل شي.

د تعصب په اړه د احمد شاملو دا لیکنه د لوستلو وړ ده. هیله مند یم پښتو ژباړه یې د پوهې په لاغورېدلو کې ګټوره تمامه شي.

دا یادونه لازمه ګنم، چې ما د دې وینا د متن ځینې عنوانونه د منځپانګې په پام کې نیولو سره، یو څه بدل کړي دي.

# لړلیک

# اندېښنه

ډېرو گرانو دوستانو،

ستاسو په مینځ کې شتون، له تاسو سره خبرې کوول او له تاسو اورېدل تل زما لپاره یو مغتنم فرصت او یوه ښه تجربه ده. خو کله، چې سره راټولېږو، معمولاً یوازې د سیاسي مسایلو په اړه غږېږو او که مې لا ښه ویلي وي، هڅه کوو چې د هېواد د داخلي پېښو په اړه خبرې وکړو او هغه څه چې په هېواد کې تېرېږي، له خپل بنسټیز لیددود سره وتلو او داسې نور..... دا کار ورو ورو، اوس په یو رسم او عادت بدل شوی او تقریباً د یوه دود بڼه یې نیولې. زه نن شپه په پام کې لرم دا رسم او دود مات کړم او خپلې خبرې له نورو ځایونو څخه پیل او بل ځای ته یې ورسوم. غواړم د راتلونکي په اړه د خپلو اندېښنو په هکله وغږېږم. له همدې کبله مې خبرې په یوې لنډې پوښتنې پیلوم، خو دې پوښتنې ته د رسېدلو لپاره اړیم چې لومړی یو څه مقدمې جوړې او بیا یې زمینه چمتو کړم.

فکر کوم د دې زمینې جوړولو لپاره به ښه دا وي چې د بل هر کار پر ځای یو تاریخي حقیقت د بېلگې په توگه راواخلم، ویې څېړم، وړاندې یې کړم او له لاسته راتلونکې پایلې څخه یې گټه واخلم او د پام وړ پوښتنه د هغې په رڼا کې مطرح کړم.

دولس کاله مخکې د «مهرگان» په جشن کې، په نیویارک کې مې ولیدل چې دوستان د دې جشن لامل «پر ضحاك باندې د کاوه بریا» گڼي. البته دا موضوع نه نوې ده او نه هم د حیرت وړ، ځکه چې په رښتیا هم ډېري دوستان، هر چېرې چې دي، دا لفظي تېروتنه کوي. زه دا موضوع د هماغې تاریخي بېلگې په توگه، چې مې وویل، مطرح کوم او شنل او تحلیل یې په دوو برخو کې تر سره کوم، وگورو چې چېرته رسېږو.

# د مهرگان جشن

مهر په لرغونې پارسۍ کې، په اصل کې میترا؛ که سم یې تلفظ کړم میثره و. او مهر یا میترا یا میثره هماغه لمر دی. مهرگان هم چې په لرغونې پارسۍ کې میثرگانه تلفظ کېدو، د ژبدود له مخې یعنې «لمر ته منسوب» مانا ورکوي.
په خپله د میثره یا مهر یا لمر په اړه باید ووایم، چې د ایرانیانو له اسطوره ایزو خدایانو څخه یو و او د ایراني اند د ځلېدو یو ځرگند او ځلاند انځور گڼل کیږي، چې په هغه کې د لومړي ځل لپاره د خدای اند او د خدای تصور د انسان په بڼه ځمکې ته راځي او که سم ځیر شئ، گورئ چې دا هغه بېلگه ده، چې وروسته د هغې له مخې مسیح جوړوي.
دلته اړینه ده، د موضوع په څنډه کې د یوه ټکي یادونه وکړم، چې هیله من یم بې ارزښته ونه گڼل شي:
د مسیح د اسطورې اهمیت په دې کې دی چې مسیح (البته د مسیحیانو په باور) د خدای زوي گڼل کیږي – یعنې د الوهیت یوه برخه. دا الوهیت ځمکې ته راځي؛ د خدای یوه برخه له اسمانه ځمکې ته راځي، هغه هم د یو خاورین انسان په بڼه. له انسان سره د انسان لپاره هلې ځلې کوي، له انسان سره او د انسان لپاره درد گالي او په پای کې د انسان د ژغورنې لپاره ځان قربانوي... موږ له هغه ملنډیز مسیحیت سره کار نه لرو چې پاپانو، کشیشانو او واتیکان سپنهلی، خو د مسیح د اسطورې په فلسفي شننې سره دې ښکلې او ښایسته پایلې ته رسېږو، چې انسان او خدای د یو بل لپاره درد گالي، ربړونه زغمي او بالاخره د یو بل لپاره بلهاري کیږي. داسې یوه اسطوره چې سخته ښایسته، پرتمینه او له مانا ډکه ده.
لنډه دا، چې ځمکې ته د خدای د راښکته کېدو موضوع، په یوه دردمنونکي قالب کې د خدای تجسد چې له غوښې، پوستکي او هډوکي جوړ شوی او اسمان ته د مسیح بیا

ستنېدلو موضوعات ، ټول د مهر یا میثره د بېلګې له مخې جوړې شوي دي. د مهر په دود کې او د میترایانو د اعتقاداتو له مخې، میثره وروسته له هغې چې د انسان په بڼه ځمکې ته راځي او د خاورې د بډاینې او د ځمکې د برکتي کولو لپاره غوا قربانوي، بېرته اسمان ته ستنېږي.

دا د مهر په اړه، چې مهرګان هغه ته منسوب دی.

خو مهرګان، په اصل او بنسټ کې د خریفي کال یعنې د مني کال مهمه ورځ او پیل و. دلته بیا ناچاره یم، یو څه حاشیې ته لاړ شم او عرض وکړم، چې زموږ نیکونو د یوه لمریز کال پر ځای، دوه نیمایي کلونه لرل، چې عبارت وو له خریفي یا د مني کال او ربیعي یا د پسرلني کال؛ چې بحث یې ډېر مفصل او زموږ د نن شپې له بحثه بهر دی، خو په ډېره لنډه او ټولیزه توګه ویلی شم چې همدا ظاهراً کوچنی ټکی د هغو معتبرو اسنادو په شمېر کې دی، چې ثابتوي آریایي قومونه د ځمکې د شمال تر ټولو لېرو سیمو څخه، بېلابېلو ټاټوبو او د هغو په ډله کې ایران ته کډه شوي دي، ځکه کال یې په پیل کې په دوو برخو، په دوه میاشتني دوبي او لس میاشتني ژمي وېشل کېده او څنګه چې پوهېږو، دا موضوع قطب ته نږدې سیمو سره تړاو لري. وروسته،کله چې دا قومونه څومره هم په جغرافیایي لحاظ ښکته راغلي، د دوبی موده یې اوږده او د ژمی موده یې لنډه شوې او په کلیزې کې یې سمون راوستی دی، چې بالاخره کال یې تقریباً په دوو شپږ میاشتنیو برخو وېشل شوی، چې پسرلنۍ برخه یې په **نوروز** او د مني برخه یې په **مهرګان** پیلېدله، چې دا دواړه ورځې یې په جشن لمانځلې.

د مهرګان د جشن ورځ د بغیادیش میاشتې، یعنې د بغ یا میثره له میاشتې سره سمون درلوده.

د بغ کلمه په خپله په لرغونې پارسۍ کې د مطلقو خدایانو په مانا وه، چې وروسته یې یوازې میترا یا مهر ته اطلاق کړې ده. بخ هم چې د بغ تصحیف دی، په روسي ژبه کې د خدای مانا لري. په ترڅ کې ستاسو د معلوماتو لپاره مې عرض کړی وی چې د بغیادیش میاشت د شُمس له بابلي میاشتې سره معادله ده، چې هماغه شمس یا لمر

دی چې د زړې ارمني ژبې معادل يې هم مهرګان دی چې بيا هم د مهرګان يا میثرګانه تصحیف دی، سغدي میاشته يې هم فغکان و، چې بيا فغ هماغه بغ د خدای یا مهر مانا لري او د چین پاچایانو ته يې هم له همدې ریښې ځخه فغفور یا بغپور ویل چې مانا يې ده د خدای یا د لمر زوی. او بالاخره زردتشتیانو هم دا میاشت مهر نوموله، چې موږ يې نن هم کاروو.

البته دا په کرونولوژي پورې تړلي ټکي دي چې د ژبپوهنې او توکمپوهنې په شان نورو علومو سره ظاهراً ګډې ریښې پیدا کوي او د یو بل په وسیله تأییدیږي. (د ظاهراً کلمه مې د دې لپاره وکاروله، چې زه په دې علومو کې سوچه بې سواد یم.)

په هر حال، څنګه چې ګورو، مهرګان له دې لیده د ضحاك او فریدون او د کاوه پاڅون او داسې نورو موضوعاتو سره هیڅ تړاو نه لري. د دویم کال د نیمایي برخې هغه جشن و چې د نوروز په اهمیت يې لمانځلو او د مهر میاشتې له شپاړسمې (یا د مهرګان له ورځې) د مهر تر یوویشتمې (یا د رام ورځې) پورې، شپږ ورځې يې دوام کاوه. البته کېدای شي، چې د ضحاك نسکورېدل له همدې ورځې سره برابر شوی وي، خو داسې یو برابرېدل د دې لامل کېدلای نشي، چې د دې جشن وجودي علت بدل کړي. د ساري په توګه، که چېرې ناصرالدین شاه يې د یوې جمعې په ورځ وژلی وي، نو موږ ادعا کولای نشو، چې هره جمعه له دې امله رخصتي کوو، چې ناصرالدین شاه په همدې ورځ وژل شوی دی.

وړاندې مې دې ټکي ته اشاره وکړه، چې مسیحیت د مهرپرستۍ ټول آداب او دودونه کټ مټ تقلید کړي، چې د تعمید غسل او د شرابو او ډوډۍ تقدیس يې یادولی شو. دا هم ورزیاته کړم، چې د یو شمېر کسانو په باور، د دسمبر د پنځه ویشتمې نېټې جشنونه، چې وروسته د مسیح د کالیزې په توګه لمانځل شوي، ریښې يې د مهرګان همدې جشن ته رسېږي. اوس چې د مسیح د میلاد خبره راپورته شوه، نو دا ټکی هم باید په لنډیز سره  ووایم، چې په خپله میترایي ایرانیانو د مهرګان ورځ په ورته وخت کې د مشیا او مشیانه د زېږېدنې ورځ ګڼله، چې د سامي اسطورو هماغه آدم او حوا

ده، او دا ټکی په بُندِهِشُن کې(هغه مهم کتاب چې د پخوانیو اعصارو راپاتې دی) هم راغلی دی. په دې اړه نورې ډېرې داسې خبرې شته چې ناچار یم پرې یې ږدم او تېر شم، د بېلګې په توګه دا ټکی چې آیا اصولاً مسیا یا میسا (مسیح او مسیحا) هماغه مشیا دی که نه، او دا څېر نور ټکي.

خو راځئ، چې دوهمې مسئلې، یانې د حضرت ضحاک قضیې ته ورشو:

زما ګرانو دوستانو! زموږ هېواد په رښتیا هم یو جالبه هېواد دی. په دې هېواد کې داسې اندیال سرداران راپورته شوي، چې ډېر حیرانوونکي فکري او ټولنیز غورځنګونه یې هڅولي، ثمر ته یې رسولي او کله یې هم تر بشپړ بریا پورې مخ ته بېولی دي. ډېر انقلابي روڼ اندي زموږ د هېواد د تاریخ په عجیبو پړاونو کې راپورته شوي، چې د هغوی د تاریخي لاسته راوړنو مطالعه هومره لویه ده چې ناباورېدونکې ښکاري.
د ټولو بلوسګرانو له ګډو چال چلندونو څخه یو، د تاریخ تحریفول دی. هغه څه چې په پایله کې په خواشینۍ سره یې نن د تاریخ په نامه لرو، د یو موټي درواغو او بابېزو څخه پرته بل څه نه دي، چې د بېلابېلو پېرونو درباري غوړه مالانو او چاپلوسانو اوبدلي. دا د حقایقو تحریف او د تور سپین او د سپین تور ښودل تر هغه بریده دي، چې کولای شي تر ټولو ښه نیتي کسان هم تېر باسي.
د دې تاریخي تحریفاتو ډېره په زړه پورې بېلګه همدا د فریدون او کاوه او ضحاك پېښه ده.
مخکې له دې چې پر دې موضوع وغږېږم، باید د اسطورې او تاریخ په اړه د یوه ټکي یادونه وکړم: دا ټکی د مطالعې وړ ټکی دی، له بېلګو او شواهدو ډک، خو زه ناچار په بیړه باید ترې تېرېږم او دومره اشاره کووم، چې اسطوره یا میت یو ډول افسانه ده، چې کېدای شي یوازې د هیلو او غوښتنو پر بنسټ د پخوانیو انسانانو د تخیلاتو زېږنده واوسي او کېدای شي په واقعي نړۍ کې د تاریخي حقایقو ملاتړ ولري، یانې داسې

بې منطقه او ماشومانه افسانه وي چې منځپانګه يې له يوې تاريخې پېښې سرچينه اخيستې وي او بيا يې د يو ملت په ذهني چاپېريال کې وده کړې او نوې بڼه يې موندلې وي، لکه د ابراهيم بن احمد ساماني د ژوند لنډ تاريخ چې د بودا سيدهارتا له افسانوي ژونداليك سره ګډ شوی او د ابراهيم بن ادهم په اسطورې بدل شوی دی. په دې صورت کې کولای شو په بېلابېلو سرچينو کې له پلټنې سره دا تاريخې حقايق ومومو، پر هغوې د معرفت رڼا وشيندو او تور له سپين جلا او په منځپانګه يې پوه شو؛ همدا د ضحاك اسطوره بيا هم د دې موضوع يوه روښانه بېلګه ده.

# نوم يې ګئومات، خو په غاصب مشهور و

د ايران په لرغونی تاريخ کې د يوه سړي نوم اخيستل شوی، چې ګِئومات نومېده او په غاصب مشهور و.

په دې پوهېږو، چې د کوروش تر مرګه وروسته، زوي يې کبوجيه د سردارانو، درباريانو، روحانينو او اشرافو په هوکړې سره پاچاهۍ ته ورسېد او د مصريانو د لوټلو لپاره يې لښکر وايست، څنګه چې جګړه او نړۍ نيونه، چې لومړی د مغلوبو ملتونو د شتمنۍ د لوټنې او بيا وروسته د کلني باج و خراج سره اړينه کېدله، په هغه وخت کې د لښکرو سردارانو ته، چې يوازې له اشرافي طبقې څخه ټاکل کېدل، يو ډول مثمر توليدي کار ګڼل کېده (البته که وکولای شو لوټ او باج اخيستنې ته «توليدي کار» ووايو!).

پريږدئ يو عمومي حکم صادر کړم او خاطر مو جمع کړم: د وخت ټول زورواکي لېوني وو. اروا‌پېژندنه دا ټکی په اسانۍ ثابتولی شي. که وغواړم خپل حکم ته پراختيا ورکړم، په دې ډول يې بايد سم کړم: د تاريخ پر ټولو زورواکو له لمړي دمه يو څه کېدل: ټول له پيله شوده ګان وو او په ډېرو کې دا شوده توب د ځنځيري لېونتوب تر لوړ مقامه رسېدو. ياني د شاوخوا کسانو، سرتېرو مرييانو او په ختېه نوکرانو هغوې ته هومره غوړه مالي کړی او لکۍ ورته خوځولی او ځيني ځايونه يې ورته څټلي، چې له دوی يې عظيم الشان نابغې، ستر هوښياران او پوه رهبران جوړ کړي، چې ورو ورو خپلو حريفانو ته مشتبه شوي او د ښېراتوب هغې کچې ته رسېدلي، چې د هغه يوه په ذهن کې ناڅاپه داسې ګرځېدلي چې زه د لمر زوی يم، هغه بل ادعا کړې چې زه بنده د خدای زوی يم؛ سکندر ادعا وکړه، چې د هغه مار نطفه دی چې د شپې لخوا يې د مور پر بړستنې خوځېده او نادرشاه، چې د لمړي سره يې د دوو خرو وربشې ببلولای نشوې، خپل پلار يې هېر کړ او مدعي شو، چې د توري زوی، د توري لمسی، د توري کړوسی او د توري کودی دی. د دې تاريخي لېونو تر مينځ يوازې د بيچاره کبوجيه حساب له

نورو ښېل دی. دا ښاغلی د هغو ملنگانو په شان و، چې دوړو بادولو ته يې اړتيا نلرله، اړتيا يې نلرله چې شاوخوا کسان يې شونډک ته سره ټوټه ورپوي او يا لکۍ ورته جګه کړي. ځکه زموږ د مشهورې وينا له مخې د بلوغتيا ماده يې د زلميتوب له پيله مستعده وه او بې لکۍ نځېدو. دا شوده (چې اشرافو له همدې کبله پر پلاز کېنولی و، چې واګې يې د دوې په لاس کې وي) مصر ته تر رسېدو او هلته له بريا او بې ساري جنايتونو وروسته په بشپړه توګه ځنځيري شو. د بيهوښۍ، کمزورتيا، ميرګي او جنون حالت يې پيدا کړ. داسې ورځې ته ورسېدو، چې مصريانو د زړه له تله باور پيدا کړ، چې دا ناروغي هغه سزا ده، چې د مصر خدايانو د ده جنايتکارانه کړنو په بدل کې پر ده نازله کړې ده.

کبوجيه د برديا په نامه يو ورور درلود. برديا طبعاً د خپل ورور له جنوني حالت څخه خبر و او پوهېده چې نن يا سبا به د اعليحضرت د جنون پای هرومرو يوه تماشه شي او تاج او پلاز به له لاسه ورکړي. له بلې خوا له هغه ځايه چې د افکارو خاوند و او څو ځله يې ځينې غورځنګونه په لاره اچولي وو، اشراف يې د وينې تږي وو. هغه پوهېده که فرضاً کبوجيه له تخته وپرځول شي، اشراف به په هيڅ بيه پرې نږدي چې دی يې پر ځای کښېني. همدا و چې مخکې شو او د کبوجيه او پوځ په غياب کې پر پلاز کښېناست. کله چې د برديا د پاڅون خبر مصر ته ورسېدو، داريوش او د پوځ نورو مشرانو کبوجيه وواژو او پر ايران يې بريد وکړ، چې د برديا لاس پوځې ځواک ته لنډ کړي.

هغه جعلي او تحريف شوی تاريخ، چې نن ورته لاسرسی لرو، پېښه په دې ډول رانقلوي:

«کبوجيه وړاندې له دې چې مصر ته حرکت وکړي،
خپل يو محرم ته، چې نوم يې پرکڅ ساسْ پِس و، دنده
وسپارله چې په پټه او بې له دې چې څوک خبر شي،

بردیا ووژني؛ داسې نه چې د هغه په نشتون کې د پاچاهۍ هوا يې پر سر ولګېږي. دا ماموريت تر سره شو، خو قسمت ته ګورئ چې د ګئومات په نامه د زردتشتيانو يو روحاني، چې له مقتول بردیا سره یې عجیب ورته والی لاره، له دې رازه خبر شو او له هغه ځایه چې پوهېدو چې پرته له هغه بل څوک د بردیا له وژل کېدلو خبر نه دي، نو وېې ویل چې زه بردیا یم او پر پلاز کښېناست.»

شته جعلي تاریخ د پېښې پاتې لړۍ په دې ډول تحریفوي:

«کله چې دا خبر په مصر کې د کبوجیه غوږ ته ورسېدو، څه له دې کبله چې یو چا په درواغو ځان بردیا نومولی او یا د دې لپاره چې دوکه شوی او بردیا یې وژلی نه دی، ډېر په قار شو (او دلته دوه روایتونه شته:) یو دا چې د جنوني قار له امله یې ځانوژنه وکړه، بل دا چې بې له ځنډه یې د آس پر شا ودانګلی چې پر ایران برید وکړي. د دې ناڅاپه دنګلو له امله، هغه توره یې چې پر ملا پورې تړلې وه، په خېټه یې ننوځي او له تېپه یې مړ شو.»

دا وروستی روایت په بشپړه توګه جعلي دی. د جمشید د تخت ډېرتوږنه ښکاره کوي، چې ان عادي سرتېرو هم توره بی تېکي پر ملا نه تړله، پاچا خو په خپل ځای پرېږده. په هر حال، د جعل شوي تاریخ له مخې:

«پرك ساس پس، د بردیا د وژلو راز د پوځ له مشرانو سره شریک کړ. هغوي په بیړه ځانونه ایران ته ورسول او وپوهېدل، چا چې ځان بردیا نومولی دی، د گئوماته په نوم د زردتشتیانو هغه روحاني دی، چې ورور یې د سلطنتي ماڼیو رییس دی. نو له مخکنۍ پرېکړې سره سم یې په ځانگړي ساعت پر ماڼۍ برید وکړ او هغه یې ووژو او له یو بل سره یې وعده وکړ، چې د بلې ورځې په سبا به په یوه ځای کې سره راټول شي او د هر چا آس چې د نورو له آسونو مخکې وشنېدو، هغه دې پاچا شي. د داریوش ناظر له هوښیارۍ کار اخلي او یوه شپه وړاندې په وعده شوي ځای کې د داریوش د آس او د یوې اسپې د معارفې زمینه برابروي. په سباني سهار د داریوش آس دې ځای ته د رسېدلو سره سم د تېرې شپې د خوندورو شېبو په یاد شنهېږي او د دغه شهوتناکه ځاروي په مټ، پاچاهي(چې بی له شکه الهي ودیعه ده) داریوش ته ورسپارل شوه.»

ښه نو، تاریخ داسې وایي. خو دا تاریخ جعلي دی، په دوکه مارۍ لتاړ او په دروغو ډک دی، د حقیقت ملنډېز تحریف دی. راځئ وگورو چې پېښې شوی حقیقت څه و:
لومړی به ووایم چې: څه اړتیا وه ،چې داریوش او ملگري یې کبوجیه ووژني؟
۱. د کبوجیه لېونتوب تر هغه حده رسېدلی و، چې نور نو اړینه وه، چې د ده په اړه اساسي فکر وکړي.

۲. یوازې د کبوجیه په وژلو سره یې کولای شول د بردیا وژنه د هغه په غاړه واچوي او دوې په خپله تورن نشي.
۳. څنگه به چې وگورو د کبوجیه په وژلو سره د بردیا وژنه پرته له ستونزې جوړونې تر سره کېدله.
بله دا چې:
- د بردیا له وژلو وروسته یې ولې په پېښه کې جعلي گئومات جوړ کړ؟
۱. ځکه چې له کبوجیه وروسته د پاچاهۍ حق بی له شکه بردیا ته رسېدو. لومړی دا چې هغوې د بردیا له کړنو او اقداماتو سره سخت مخالف وو او دویم دا چې د بردیا په وژلو سره په پاچاوژنې تورنېدل، چې پایلې یې معلومې وې. له همدې کبله یې بردیا د گئومات په نامه وواژه.
۲. د بردیا ټولنیز نفوذ تر هغه زیات و، چې ولسي پرگنې یې وژل وزغمي.
د پېښې د واقعیت ارزول، په ښه توگه کولای شي دغه ټکي روښانه کړي:
موږ د واقعیت د پوهېدو لپاره، یو معتبر تاریخي سند په لاس کې لرو. دا سند د بیستون ډبرلیکنه ده، چې وروسته د همدې داریوش په فرمان پر ډبرې وتوږول شو. منم، چې د دروغجن حافظه عموماً کمزورې وي، خو څه چې د تاریخ تحریفولو لپاره پر دې ډبرلیکنې توږل شوي، د دې تاریخي دوکه ماری څېره بربنډوي.
زه په بیړه د دې ډبرلیکنې له جملو څخه  یوازې یوه جمله تاسو ته لولم:

«ما داریوش، ورشوگانې، کروندې او منقولې شتمنۍ او مریيان بېرته جنگیالیو ته ستانه کړل...ما په پارس او ماد او نورو سیمو کې هغه څه، چې اخیستل شوي وو، بېرته واخیستل.»

عجب، ښاغلیه داریوشه! دا جنگیالي، چې تا خپلې ډبرلیکنې کې ورته اشاره کړې، د پوځ له هغو مشرانو او سردارانو پرته څوك دي، چې له اشرافې طبقې څخه ټاکل کېدل؟چا له دوی ورشوګانې، کروندې، منقولې شتمنۍ او مریيان اخیستي وو، چې تا بېرته ورستانه کړل؟

اصلي مسئله همدا ده. حقیقت دا دی چې اصلاً د ګئوماته په نامه چا شتون نه لاره‌ء او هغه څوك چې د داریوش او د ده یارانو لخوا ووژل شو، په خپله بردیا و. بردیا د خپل ورور او د توطئه ګرو درباري اشرافو له نشتون څخه ګټه پورته کوي او پر پلاز کښېني او بی له ځنډه د ټولنې د جوړښت په بدلولو پیل کوي، د انقلاب تر کچې بدلونونه. لکه څنګه چې د هرودوت له لیکنې څرګندېږي د خپلې پاچاهۍ په اوو تر اتوو میاشتو کې ډېر زیات ښه کارونه تر سره کوي، داسې چې مړینه یې په ګرده کوچنۍ آسیا کې ملي ناورین ګڼل کېږي او د ده لپاره عمومي ویر اعلانوي. هرودوت د بردیا د کړنو په لړ کې له پوځي اجباري خدمت نه د خلکو معافېدل او د درې کالو د مالیاتو د بخښلو یادونه کوي، خو د بیستون ډبرلیکنه، چې د داریوش په فرمان توږل شوې، ښکاره کوي چې موضوع له دې خبرو لا زیاته  مهمه وه:

د بیستون ډبرلیکنه د ورشوګانو او د کرنیزو ځمکو او د منقولو شتمنیو یادونه کوي، چې داریوش بېرته اشرافو او جنګیالیو (یانې د پوځ مشرانو) ته ستانه کړي دي ـ داسې ښکاري چې بردیا د اشرافي کورنیو منقولې او غیر منقولې شتمنۍ مصادره او بزګرانو او کروندګرو ته یې بخښلې وې.

ډبرلیکنه د هغو بردګانو څخه غږېږي، چې داریوش بېرته جنګیالیو ته ستانه کړي ـ داسې ښکاري چې بردیا مریيتوب یا لږ تر لږه مریي وزمه کار په بشپړه توګه ملغی کړی و.

یو روښاندي مورخ په خپلې رسالې کې لیکلي دي:

«په دې بهیر کې، خبره د شتمنیو او ورشوګانو مصادرې او د معبدونو سیزولو او د مالیاتو بخښلو او د بیګار (برده وزمه کار) له منځه وړلو ته ورسېده (او دا ټول، لږ تر لږه) د هخامنشي ټولنې په اقتصادي او ټولنیزو اړیکو کې د کړکېچ د شتون ښکارندوې دی.»

دیاکونف هم لیکي:

«د ګئوماتا(او زما په باور د بردیا)د کار تر ختمېدو وروسته، داریوش له ډېرو پاڅونونو او مخالفتونو سره مخ شو. د دې پاڅونونو موخه د بردیا د وخت د نظامونو بیا راژوندي کول و، چې داریوش ټول لغوه کړي وو. لږ تر لږه درې پاڅونونه په ټوله مانا د ولسي غورځنګونو بڼه ونیوله. دا درې د فرادا پاڅون، فَروَرَتیش فرائورت پاڅون او د پارسي وهیزداته له پاڅون څخه عبارت وو. داریوش د دې پاڅونونو په وړاندې سخت او خونړی چلند وکړ، لکه څنګه چې په بابل کې یې د بېلګې په توګه د غورځنګ درې زره رهبران او مشران یې یو وار په دار وځړول.»

وګورئ په خپله داریوش د فرورتیش د پای په اړه په دروغجنې ډېرلیکنې کې څه وایي:

«هغه یې په ځنځیرونو تړلی ماته راوست. ما په خپل لاس د هغه پوزه او غوږونه پرې کړل او سترګې مې ورته د سر له کاسې راوویستې، هماغه شان یې په

ځنځیرونو او هتکړیو کې زما په دربار کې وساته او ټولو
جنګیالو هغه ولیدو. له هغې وروسته مې فرمان ورکړ،
چې په اکباتانه کې یې پر نېزې کښېنوي. همدا ډول
هغه کسان، چې د نوموړي پلویان وو، د اکباتانه په
کلا کې په دار وځړول.»

اصولاً دا لېونتاړه غچ اخیستنه او نه باورونکې داړنه، په کافي ډول بربنډونکی ده او د فرورتیش د غورځنګ پراختیا او اهمیت په ښه توګه څرګندوي.
د تاریخ اړول یوه اوږده مخینه لري. د انوشیروان په پېښنه ټول پوهېږي او نه یې تکراروم. دې سرېخور حرامي له روحانیونو سره جوړجاړی وکړ، که هغه د وروښو پر ځای پاچاهی ته ورسوي، د مزدکیانو ریښې به وچې کړي. په یو قول چا لیکلي، چې یوازې په یوې ورځ کې یې په ټول هېواد کې یو سلو دیرش زره مزدکیان په چل ول سره ونیول او له سر څخه تر ملا پورې یې په نسکور ډول د آهکو په کنده کې ښخ کړل. دې کړنې داسې یوه کرکه رامنځته کړه، چې د رژیم تبلیغاتي ادارې د هغې د نښو نښانو له منځه وړلو لپاره لاس په کار شوې. هڅه یې وکړه چې د شوده ګی په نندارو، لکه د عدل ځنځیر او داسې نورو سره له دې خونړي دېو څخه د عدل فرشته جوړه کړي، او جوړه یې هم کړه او داسې یې جوړه کړه چې وېې کړای شول تاریخ ګواکې د تل لپاره دوکه کړي، لکه څرنګه چې نن کله د انوشیروان نوم اورو، وغواړو که و نه غواړو د عادل کلمه مو چټکه په ذهن کې راځي.

**زنده ست نام فرخ نوشیروان به عدل    گرچه بسی گذشت که نوشیروان نماند**
(ژوندی دی د نوشیروان مبارک نوم په عدل/ که څه هم ډېره موده کېږي چې انوشیروان نور ژوندې نه دی)

خوارکی سعدي!

دا د داریوش او بردیا پېښنه په یاد ولرئ، چې ببرته ورته راستانه شوو.

# د ضحاك قضيه څه ده؟

اوس وګورو چې د ضحاک قضيه څه ده:

ښاغلی حصوري، زما يو دوست، چې يو ارزښتمن څېړونکی دی، په يوې مقالې کې د ضحاك د اسطورې په اړه ليکي:

جمشيد ټولنه په طبقاتو ووېشله: روحاني طبقه، د اشرافو طبقه، د سرتېرو طبقه، د کسبګرو او کروندګرو طبقه او داسې نور. له جمشيد وروسته ضحاك واك ته رسېږي او له ضحاك وروسته، فريدون، چې د آهنګر کاوه له پاڅون سره پاچاهۍ ته رسېږي، لومړنی کار چې کوي، د جمشيد د پېر طبقاتو ته د ټولنې ستنول دي. د فردوسي په وينا، فريدون همدا چې پاچاهۍ ته رسېږي په ښارونو کې ډنډوره اچوي چې:

**سپاهي نبايد كه با پيشه ور　　　　به يك رو جويند هر دو هنر**

(پوځي نه ښايي چې له کسبګر سره / په يوه ډول د هنر په لټون شي)

**يكي كارورز و دگر گرزدار　　　　سزاوار هر دو پديد است كار**

(يو کار کړي او بل ګُرز لري/ د دواړو لپاره وړ کارونه جوړ شوي)

**چون اين كار آن جويد آن كار اين　　　　پر آشوب گردد سراسر زمين!**

(که دی د هغه او هغه د ده د کار په لټه شي / ټوله ځمکه به له بلوا ډکه شي)

دا راښکاره کوي، چې ضحاك د خپل سلطنت په پېر کې، چې د جمشيد او فريدون د پاچاهۍ تر مينځ و، په ټولنه کې يې طبقات له مينځه وړي وو. البته د دوه درې زره کاله وړاندې ټولنې د طبقاتي وېش په اړه، موږ څښې معلومات لرو. دا طبقه بندي، نه يوازې د ايران د لرغونې ټولنې ځانګړنه وه، بلکې نوی اوستا، چې متن يې په اختيار کې لرو، د دې طبقو شتون تاييدوي.

جوته ده، چې د ضحاك اسطوره، په کومې بڼې چې موږ ته رارسېدلې، د هغو کسانو د ذهنونو پنځونه ده، چې د طبقاتي نظام له ګټو برخمن و. هغه طبقې چې د ټولنې د هرم قاعده جوړوي، څنګه دا هیله کولی شي، چې په اصطلاح د فریدون په نامه یو تن راشي او دا پرګني بېرته هماغه طبقاتي ترورږمو ته ستانه کړي؟ ولې باید د طبقاتي نظام په راستنېدو دا خلک په زړونو کې ګوړې ماتې کړي؟

له دوو حالتونو دباندې نه ده: یا دا، چې د اسطورې پنځوونکی له شتمنې طبقې څخه وو (چې دا ډېر لېرې ښکاري) یا د اسطورې ضبطونکی (څه فردوسي، څه هم د خودای نامګ* مصنف، چې د شاهنامې اخځلیك دی) چل وهلی، هغه اسطوره، چې د بېوزلو طبقو د هیلو ښکارندویه وه، په داسې بڼه یې اړولې، چې په شاهنامه کې یې ګورو او په دې توګه یې د ځان او خپلې طبقې له ګټو په صادقانه توګه دفاع کړې ده. طبیعي ده د هغه چا په نظر، چې د طبقاتي نظام له ګټو برخمن وي، ضحاك باید وغندل شي او د بدمرغي او له ټولنیزو حقوقو بې برخي کسبګر کاوه انقلابي رسالت باید د بري په درشل کې پای ته ورسېږي او یوازې د آهنګرۍ یو ټوټه څرمن یې د ولسونو د شوده کولو لپاره د پاچا او ولسونو د نه شلېدونکي پیوستون د نښې په توګه د سلطنتي بیرغ بڼه غوره کړي او باید د فریدون، چې پخواني نظام ته د ټولنې ستنوونکی او د طبقاتو د یوځای کېدلو مخ نیونکی و، درناوی او تکریم وشي.

حضرت فردوسي د ضحاك په پاچاهۍ کې د هغه له ټولنیزو اقداماتو یادونه نه کوي او یوازې په دې بسنه کوي، چې مخکې له مخکې یې وغندي او بې له دې چې موضوع ووایي او د خپل زړه خبره وکړي، بېچاره ضحاك سپک سپاندوي؛ دوه مارونه ورته په اوږې زېږوي، چې د آراملو لپاره یې ناچار دی د انسان د سر ماغزه ورباندې وخوري.

---

* خودای نامګ، خدای نامه، چې د «پاچاهانو کتاب» په نامه هم یادېږي، د ساساني عصر یو مهم کتاب دی، چې په کې د بېلابېلو پاچاهانو نومونه او د بېلابېلو پېرونو پېښې د افسانې په بڼه په کې ثبتې شوې دي. فردوسي هم د شاهنامې د لیکلو لپاره د یوې سرچینې په توګه کارولی دی. پښتو.ژ.

اوس نو تاسې لاړ شئ د دې ملنډو په اړه فردوسي وپوښتئ، چې ولې باید د دې مارانو د خوراك لپاره د انسانانو سرونه غوڅ کړي؟ ولې يې د مړو د سرونو ماغزه نه کارول؟ په هر حال، د ژوندي انسان د ماغزو د پیدا کولو لپاره لومړی باید هغه ووژني، داسې نه ده؟ څه وکړو قلم د غلیم په لاس کې دی نو. که تاسې د ضحاك د پاچاهۍ په اړه د شاهنامې په لوستلو بسنه وکړئ، مطلقاً د اصلي قضیې نه څه په لاس نه درځې او یوازې گورئ، چې یو بابا راغلی پر تخت کښېنستلې او پر اوږو یې مارونه دي او ناچاره دی د ځوانانو د سرو ماغزو څخه خپلو مارانو ته خواړه ورکړي، چې دی و نه ځوروي. خلك له دې ربړونې تنگېږي او انقلاب کوي او پلاز یې ړنگوي او پر ځای یې فریدون پر تخت کښېنوي، او د انقلاب اصلي اتل هم یو پښ دی، چې د پښتوب یوه ټوټه څرمن یې د لرگي په سر ټومبلی ده. البته داسې فکر ونکړئ چې فردوسی علیه الرحمه نه پوهېدو، چې د انقلاب کولو لپاره لازمه نه ده چې هرومرو یو شی په لرگي وټومبل شي؛ خو دې یوې ټوټې څرمنې ته دی وروسته، چې باید د لوټمارانو او لوټ شویو د طبقاتي پیوستون په نښه د کاویاني بیرغ په توگه پورته شي، اړتیا لري!
خو کله چې د فریدون د پاچاهۍ برخې ته ورسیدئ، په دې شرط، چې له مطلب نه سرسري تېر نشئ، نو ایله به خبر شئ: لومړی دا چې، د بېچاره ضحاك پر اوږو ماران یوه پلمه وه او هغه څه چې فردوسي له تاسو پټ کړي او په خپل وخت یې غږ نه دی ایستلی، د ضحاک طبقاتي انقلاب دی؛ دویم دا، چې په ډېرې حیرانتیا سره دې پایلې ته رسېږئ چې د ضحاك د پېر اتل پښ یو شوده ببړا او د بېوزلو طبقو گټو ته یو خاین انسان راڅرگندېږي!
دا موضوع یوې خوا ته ږدو چې د ضحاك په وړاندې د خلکو پاڅون عملاً د اشرافي ټولنې له قید او بند څخه د آزاد شویو ولسونو د خپلو گټو پر ضد پاڅون دی او په حقیقت کې هغه کودتا ده، چې ځپل شویو اشرافو د هغو لومپنانو او اوباشانو په لمسونې سره د ضحاك په وړاندې په لاره واچاوله، چې زور یې ضحاک خاوری کړی و. پوښتنه دا ده، چې د پاڅون له بریا وروسته ولې پاچاهي فریدون ته سپارل کېږي؟ یوازې د

دې لپاره چې: فريدون له سلطنتي كورنۍ څخه دی او د فردوسي په وينا شاهنشاهي پرتم لري، يعنې په رگونو كې يې سلطنتي وينه بهېږي! (چې دا بنده مطلقاً د دې ډول وينې له كيمياوي فورمول څخه اطلاع نلري)!

دا په اصطلاح شاهنشاهي برم هغه موضوع ده، چې فردوسي ورباندې تل ټينگار كوي. په دې باور د هغه تعصب، چې عادي خلك د ټولنې د رهبرۍ مقام ته د رسېدلو وړ نه دي، شايد د انوشيروان په داستان كې په ښه توگه څرگند شوی وي:

قباد له اصفهان څخه د تېرېدلو پرمهال، يوه شپه د يوه بزگر له لور سره تېروي او كلونه وروسته خبرېږي چې له شاهنشاه سره د يوې شپې لپاره بيده شوې ښځې ورته يو زرين اوربله زوی زېږولی، چې وروسته انوشيروان نومول كېږي او پاچاهۍ ته رسېږي. داسې چېرې كېداې شي؟! مگر شوني ده چې يو جمجاهي* پاچا له يوې طلاقۍ څخه چې د پاچاهي وينه په رگونو كې نلري او له طبقاتي پلوه يوه بقاله ده، نرۍ ته راغلی وي؟! همدا دی چې واردمخه په يو ډول د انجلۍ توكم تر څېړنې لاندې نيول كېږي او بې له ځنډه كشفېږي چې نه، كومه اندېښنه نشته، انجلۍ د جمشيد له وينې او ختې ده او د پاچاهانو وينه په رگونو كې لري!

د فردوسي د شاهنامې په ټولو تاجدارانو كې، ضحاك يوازينې كس دی چې داسې ويلی نشي:

**منم شاه با فره ی ايزدي** **همم شهرياري، همم موبدي**

(زه يم د خدايي پرتم لرونكی پاچا / هوډ مې پاچاهي، هوډ مې موبدي**)

---

*جم: د جمشيد مخفف، چې د شاهنامې د داستانونو له مخې د پيشدادي څلورم پاچا و. لوی پاچا ورته هم ويل كېږي. جمجماه: لوی او د درناوۍ وړ پاچا

** موبد: د مغان مشر، له مغان لوړه طبقه او د زرتشتيانو روحاني مشر. پښتو.ژ

او دا په خپله ثابتوي، چې ضحاك د پاچاهۍ او ان د درباري اشرافو له کورنۍ څخه نه دی، بلکې د ولسي پرګنو له مینځه راپورته شوی.
ښاغلی حصوري په دقیقه توګه دې ټکي ته اشاره کوي:

> «له هغه ځایه چې دا پېر په ټولیزه توګه د هغو الهي اړخونو څخه جلا دی، چې نورو پېرونو ته یې ورکړی، نو باید ومنو چې یو انساني پېر دی... ضحاك د اسطورې د پنځوونکې په نظر دومره ناپاکه راڅرګند شوی، چې ان د آژی دهاك (یا ښامار) ایراني لقب او بیوراسب ایراني نوم ته یې هم پام نه دی کړی او یوځلي یې غیرایراني او په ځانګړې توګه عرب ګڼلی او په خپل ګمان یې دا رټه د ایرانیانو له لمن څخه پربمینځلې، چې خدای مه کړه یو ایرانی هم د طبقاتي نظام په شان یو سپېڅلی امر په وړاندې راپاڅېږي!»

کله چې په تاریخ کې د ضحاك د اسطورې پل ونیسو، دې حقیقت ته رسېږو چې د فردوسي ضحاك کټ مټ هماغه غاصب ګئومات دی، چې داریوش له بردیا جوړ کړی و. که تاسو د ضحاک په اړه هغه څه ته، چې ابوریحان بیروني لیکلي، پام وکړئ، نو د بیستون د ډبرلیکنې له مطالبو سره به د ده مطالبو ورته والي ته هک پک شئ. د ابوریحان د متن یو خورا ډېر مهم ټکی د ضحاك په پېر کې «په مېږه توب کې د ګډون» اصطلاح ده او دا دقیقاً هماغه شرمناك تور دی، چې پر مزدک بامدادن یې هم لګولی دی. د مزدکي او ضحاکي معتقداتو نژدېوالي ته پام وکړئ! مزدك له اړتیا څخه زیات هر ډول خصوصي مالکیت رداوه او اشتراکي مالکیت ته یې تبلیغ کاوه. څنګه چې، د اشرافو لپاره ښځې د خصوصي شتمنۍ برخه وه نه د انساني ټولنې

نیمایي برخه. نو د همدې لپاره یې په ډېر حرامیتوب سره د مزدك حکم ته عمومیت ورکړ او هغه یې تورن کړ چې مېرمنې یې ټولو نارینوو ته په اشتراکي ډول غوښتې دي. « په مېړه توب کې ګډون»، چې بیروني ضحاك ته تړاو ورکړی، هماغه شرمناک تور دی چې وروسته د مزدك په آئین پسې هم وتړل شو، ځکه «کدخدایی» چې د زوم او خاوند په مانا ده متضاده کلمه یې «کدبانو» (مېرمن) ده. اوس نو دا پرېږدئ چې بیروني د هغه پېر په اړه تاریخي ځرګندونې کوي، چې یوه اسطوره ده او لزوماً تاریخي پېښه نه ده!

ښاغلی حصوري خپله مقاله په دې جملې غزوي:

> «د ضحاك د حقوقو لاسته راوړل، چې د خلکو د ګټو د ساتلو په ګناه یې ورته پر اوږو ماران کښېنولي او جادوګر یې ګڼلی، موږ نباید د جمشید د داستان له ادامې څخه ودروي: ګورو، چې فریدون یوځل بیا د ایران د پخوانیو پاچاهانو زوړ قالب مومي او د ضحاك څپانده پېر له مینځه وړي او ټولنه بېرته په هغه لور بیایي، چې جمشید بېوله.»

دوستانو ګورئ، چې د افسانوي ضحاك یا د تاریخي بردیا حکومت موږ په ناسمه او په تېروتنې سره د فردي زورواکۍ، ظلم، بلوس او د استبدادي واکمنتیا مظهر ګڼلی دی. په بله وینا خپل یوازینی لرغونی شخصیت مو، چې کارنامې یې د بیستون د ډبرلیکنې په شهادت او ان د شهنامې د مدارکو پر بنسټ له ولسی کړنو بډایې دي، د فردوسي هغو غرضناکو تبلیغاتو پر بنسټ، چې د خپلو طبقاتي ګټو او شخصي باورونو له مخې یې کړي، په ډېره ناوړه توګه ککړوو او بیا کاوه د ولسي انقلاب مظهر ګڼو، په داسې حال کې چې کاوه په نهایت کې له ولسي ضد عنصر پرته بل څه نه و.

په دې ډول د يوه نازل شوې آيت په توګه د فردوسي د ويناوو بشپړه منل، چې د ناچارۍ له مخې يې کړي، زموږ د بی دقتۍ ګناه ده، نه د هغه ګناه، چې خپلې طبقاتي ګټې يا باورونه يې په پام کې نيولي دي.
په دريمې نړۍ کې د رژيمونو سياست ارتجاعي او استثماري دی. هر رژيم له خپلو تبليغاتي وسيلو سره له يوې خوا يوازې هغه څه چې خپله يې غواړي او يا ورته ګټور دی، تبليغوي او له بلې خوا په سانسور او تراره سره د هغه اند او فکر د خپرولو مخه نيسي، چې له خپل ګټندويه سياست سره يې په تضاد کې ويني. ګورئ، چې تر اوسه پورې هيڅ څېړونکي تاسو ته نه دي ويلي چې د فرودسي شاهنامه، که د هغه په وخت کې، له اوس څخه نژدې زر کاله پخوا، د عرب ځپلي، خليفه ځپلي او د ترکانو سلجوقي ځپلي ايران د خلاصون لپاره مبارزه هڅوله، نن بايد په پوهې ورسره چلند وشي، نه په ترلو سترګو. د پخواني رژيم تبليغاتي بنسټونو شاهنامه «د ايران ملي حماسې» په توګه نوموله، حال دا چې د ايران د ملت څرک په کې نه لګېږي او که چېرې هم وي، نو د وطن او ملت مفاهيم په ټولو ځايونو کې د پاچا په کلمه کې بيانوي. بښه، که داسې نه وای، نو په ايران کې د راډيو د جوړېدلو له پيله به يې هر سهار د لوبغالي د ډولکي په دربولو سره يې د خلکو په اعصابو کې نه نيستلې. نن ورځې شاهنشاهي برم څه مانا لري؟ او بيا موږ ته يې څه، چې فردوسي له مطلقه سلطنت پرته بل سياسي نظام نشوای پېژندلی ؟
که په ايران کې مو لټه کړی وای، چې يو کتاب، يوه مقاله او يا يوه رساله تأليف کړئ او په هغې کې مو ليکلې وای، چې په شاهنامه کې يوازينی کس چې شاهنشاهي برم نه لري او د ولسي پرګنو له مينځه راپورته شوی، ضحاک دی؛ او دې سړي په دغه يا هغه دليل ټولنيز محدوديتونه له منځه وړل او په ژورو ټولنيزو سمونونو يې لاس پورې کړی، نو حکومت يې د فردوسي د نظر په خلاف د انصاف او پوهې حکومت و او که ليکلی مو وای، چې د کاوه په نامه يو تن د ضحاک پر ضد قيام وکړ او د جمشيد د وينې او خټې يو تن يې د هغه پر ځای کښېناو او هغه څه چې د کاوه د پاڅون په نامه

تعبیریږي، په واقعیت کې زاړه استثماري بهیر ته د ټولنې بېرته ستنولو یوه انقلابي ضد کودتا وه؛ نو که چېرې سر یې درته تر وزرې لاندې کړی نه وای، لږ تر لږه یې ستاسې د څېړنو پایلې ته د خپرولو اجازه نه ورکوله او که په یو ډول دا څېړنې خپرې شوې وای، نو په زرګونو وسیلو یې ځپلۍ. لکه څرنګه چې له حافظ څخه زما د اخځون په اړه د رژیم د کلتوري برخې پشمینه ښکرو استادانو په پوره شوده توب رایه صادره کړه، چې ما باید محاکمې ته وکاږي، وروسته چې اوضاع بدله شوه، نو بېخي یې د خپرېدو مخه ورته ونیوله.

ښه، حقیقتونه او واقعیات شتون لري او هلته دي: په شاهنامه کې، د بیستون په ډبرلیکنه کې، د حافظ په دیوان کې، په هغو کتابونو کې چې لوستل یې کفر او الحاد ګڼل شوی، په هغه فلم کې چې سانسور یې د کتلو اجازه نه ورکوي او په ټولو هغو شیانو کې چې دولتونه او سانسور یې د اخلاق په نوم، د بدې زده کړې په نوم، د فکر ویجاړولو څخه د مخنیوي په نوم او په زرګونو نورو نومونو او پلمو هڅه کوي، چې له هغوې سره د ولسي پرګنو د مخامخ کېدو مخنیوی وکړي. د نړۍ په هر ګوټ کې، چې هر واکمن رژیم یو څه د نه خپرېدو وړ وشمېرل، زه ځان ته حق ورکوم، چې فکر وکړم، د هغه ژریم په کار کې یو چل شته او غواړي له ما نه یو څه پټ کړي.

ځینې نظامونه د سانسور پلی کېدل له دې وینا سره توجیه کوي: «موږ نه پرېږدو چې میکروب مو بدن ته راننوځي او زموږ او د خلکو فکري روغتیا خرابه کړي.» هغوی په خپله هم پوهېږي چې چټیات وایي. د ټولنې فکري روغتیا یوازې د مخالفو اندونو له مخامخ کېدو سره خوندي پاتې کیږي. ته یوازې هغه وخت پوهېدلی شې، چې سم فکر کوئ چې زه ستا منطق په خپل ناسم اند سره ولمسوم. زه یوازې هغه وخت کولای شم خپل نیمګړې فکر اصلاح کړم، چې ته د خبرو اجازه ولرې. اپلتې پېرودونکې نه لري، خو ته چې زما خولې ته برغولی اچوې زما د اند له سموالي، زما د اند له اغېزې وېرېږې، خلك دې غولولي او نه غواړې چې دوکه دې بربنډه شي. که ته واقعاً د ټولنې د فکري روغتیا په اړه اندېښمن یې، نو ولې یې د آزاده فکر کولو مخه نیسې؟

د ټولنې فکري روغتیا د خرافاتو او جاهلیت پر ضد په همدې واکسیناسیون کې نغښتې ده، چې عوارض یې سملاسي د تعصب له لومړنۍ تبې سره ښکاره کېږي. د عقل روغتیا لپاره یوازې د فکر آزادي اړینه ده. هغوې چې د فکر او تعقل له غوړېدو څخه زیانمن کېږي د روښاندو فکرونو مخې ته دیوال دروي او هڅه کوي چې ولسي پرګنې د هرې بحث پارونکي خبرې پر ځای د هغوی قالب شوي غولونکي احکام ومني او خپل اندونه د همدې قالبي احکامو پر بنسټ، چې ورته ګټور ښودل شوي دي، برابر کړي. هغه پرګنو چې په دې توګه خپل پنځونکی فکري ځواک له لاسه ورکړی وي، د حقیقتونو موندلو او د خپل ټولنیز ځواك د پېژندلو او د شعور موندلو او ان خپلو انساني حقوقو ته د پاملرنې لپاره د خپلې ټولنې د اندیالو فکري فعالیت ته اړتیا لري؛ ځکه د هغه حقیقت موندل، چې د دوکې او چل په تلونو کې ښخ شوی وي، عاشقانه ریاضت غواړي او باید په پرېکنده توګه په آزاداندۍ او د جاهلانه تعصب پرته یې ملاتړ وشي، چې دا به هم په ناچارۍ سره په داسې ډول شرایطو کې د اخته پرګنو ځانګړتیا نه وي. دا د ضحاک یا بردیا پېښه د دې آر د ښودلو لپاره یوه بېلګه وه، چې حقیقت څومره زیانمن کېدونکی دی او په ورته وخت کې د حقیقت له څېرې څخه د دوکه مارۍ د دوړو لېرې کول څومره ستونزمن کار دی. کېدای شي په همدې تالار کې داسې کسان وي چې دومره د فردوسي په اړه تعصب ولري چې د دې خبرو له امله ما له ګوګل څخه ونیسي او ژبه می له تالو راوباسي؛ یوازې د دې لپاره چې زرکلن درواغ نن د هغوی د باورونو یوه برخه ګرځېدلې او له هغو څخه لاس په سر کېدل ورته ناشوني دي.

زموږ پخوانیو ویلي «لمر په دوو ګوتو نه پټېږي او حقیقت به بالاخره یوه ورځ وویل شي» دا حکم شاید یو وخت د منښت وړ و او قبولېدو، خو زموږ په پېر کې چې کوچنۍ تېروتنه په لوی ناورین بدلېدلای شي، نو په هیڅ ډول د دې موکه نشته چې لاس تر زنې کښېنو او د صبر لار غوره کړو، چې یوه ورځ نه یوه ورځ به حقیقت پر موږ مهربانه شي او د خپلو وروځو کومه څنډه به موږ ته راښکاره کړي.

موږ هر یو چې دلته نن سره ناست یو، باید ځان د داسې منطقي تفکر په منځپانګې سمبال کړو، چې حقیقت بوې کړای شي او بی له ځنډه یې پېژنځای ومومو.
موږ په داسې یو پېر کې ژوند کوو، چې نړۍ په بې شمېره پنډغالو وېشل شوې ده.په هر پنډغالي کې یې یو بُت پورته کړی او هر پنډغالی یې د یو بُت عبادت ته اړ کړې. دوستانو هیله من یم چې نه ځان ناګاره واچوئ، نه زما خبرې پرته له هغه څه چې دي، بل ډول تفسیر او تعبیر کړئ. زما اشاره مطلقاً د کَمْکیو ځوانانو بت جوړولو او بت پاللو ته نه ده، چې مثلاً چرتکی مایکل جکسن یا حرفه اي ډبېدونکی محمد علي کلی ورته د خدای بڼه مومي. زما اشاره د شخصیت د کېښ لاماشومانه، لا غمجنوونکی او لا زیاته شرمونکی ناروغۍ ته ده، چې موږ ډېري ورباندې اخته یو؛ موږ چې زیاتې ادعاوې هم لرو، لګن لګن خبرې کوو، او مثلاً ځانونه په داسې لوړو افکارو او اندونو سمبال ګڼو، چې د مریي توب له جغ څخه د بشریت ژغورونکي دي. هو، سیده نښه ولم او د شخصیت کېښ یادوم. همدا د نوي عصر شرمناکه بتپالنه یادوم، چې موږ ټول ورباندې اخته یو او د بېلتون په ټکی بدل شوی او د ښو نیتونو د یوې ټولګې د شیندلو لامل دی، چې هر یو په خپلو لاسونو له ځان چاپېر د تعصب دیوالونه جګوو او ځانونه په کې بندیوانوو. انسان د بشریت مخورو ته درناوی کوي او د هغوی د افکارو له ډېوې څخه رڼا اخلي، خو څنګه چې له خپلو ځمکنیو او ټولنیزو نومیالیو څېرو څخه د عبادت وړ اسماني بتونه جوړوي، نه یوازې دا چې هغه نومیالي کس ته سپکاوی کوي، بلکې د همدې نومیالي کس د نیت پر خلاف، د دې پوه ښوونکي د تعالیمو پر خلاف، چې غوښتل یې دی د تعصب او ناپوهۍ له کندې څخه رابهر کړي، یو ځل بیا د تربړمۍ، ناپوهۍ، ابتذال او جاهلانه تعصب کندې ته ورغورځوي. شخصیت پرستي هرومرو له ځان سره لنډاکه تعصب او دګماتیك قضاوت رامنځته کوي او په خواشینۍ سره دا هغه وېروونکې ناروغي ده، چې ورباندې اخته شوی کس په خپل لاس خپلې رېښې په تخځ وهي.

يو پوهندپاله او فرهنګيال ولې بايد د خپلو افکارو او باورونو په اړه تعصب ولري؟ تعصب لرل د يوه ناپوه، بې عقله او بې کلتوره انسان کار دی: د يو څه په اړه، چې په منطقي ډول فکر کولای نشي، نو د يوه بشپړه له وړاندې جوړ شوي باور په توګه يې مني او په اړه يې هم تعصب ښکاره کوي. يو لرګی ورته ښکاره کړئ او ورته ووايئ چې ته دې لرګي پيدا کړی يې، په ورځ کې درې ځله بايد شاوخوا يې ترپکې ووهې او هر ځل ديارلس کرته ووايئ چې زه شرمېږم يم. بيا نو ګوره! څه ځو کاله وروسته بېرته راشه او ورته ووايه کور دې وران شه! دا دانګونه او ټوپونه چې وهی او دا اَوْتې بَوتې چې د عبادت په نوم يې شاربې، کومه مانا نه لري! ـ پوهېږئ څه کېږي؟ـ د هماغې لرګي لاندې دې ځملوي، چې عبادت يې کوي او د يو حربي کافر په توګه سر درته له يو غوږ څخه تر بل غوږه پورې څېروي! دې ته تعصب وايي. اوس نو مهرباني وکړئ او دې شرمېدلي بنده ته ووايئ، چې ولې د هغې ښاغلي تعصب يو جاهلانه کار دی، خو زموږ تعصب، چې ځانونه د درايت خاوندان ګڼو، عاقلانه دی؟

د رژيمونو تبليغات هم کټ مټ د ولس له همدې تعصب کوونکي خاصيت څخه ګټه اخلي پورته کووي. لږ تر لږه زموږ د ايرانيانو په مينځ کې دا تعصب ښودنه ډېره محسوسه ده.

که د تصوف له لوی غورځنګ څخه سترګې پټې کړو او د بډاينې او اغېزې لاملونه يې مستثنا وګڼو، يو دوه نيم زره کلن دوديزه تراره، چې د زياتو دوديزو دلايلو له امله د ايران په نامه ټاټوبی باندې تپل شوی، زموږ د هېواد انديال - چې د قضا له مخې بې شمېره هم هومره کمه نه وه - هېڅکله نه دي توانېدلي چې د اندونو او ګروهو پاکي او ناپاکي، وړتيا او ناوړتيا او سموالی او ناسموالی، څرنګه اړينه ده له ټولنې سره شريك کړي. کله چې ولس غافل، ناپوه او بې سواده پاتې شي او جاهلانه تعصب يې رونړد کړي، اند او فرهنګ هم له خوځښت او يون څخه پاتې کيږي او په خپل لاك کې محبوسيږي او په پايله کې حرفه اي تبليغيان کولای شي هر اند د عامه تعصب پر

بنسټ د منلو وړ وګرځوي. کله چې د شاه صفي په څېر سړی خور او ظالم انسان ته د ظل الله لقب ورکړل شي، هغه سړی چې ټول فکر او ذکر يې الله دی، څه وکړي؟

بېلګه درکوم:

يو له هغو پرتمينو مبارزاتو څخه، چې په هغې کې يو ملت توانېدلی خپل ټول فرهنګ راميدان ته کړي او د هغه په ملاتړ د نيواکګرو شونډک پر خاورو ومښي، په ايران کې د تصوف غورځنګ دی.

په دې ټول پوهېږو چې ايرانيان د هغه شين بڼ دروازې وغولول، چې عربانو ورته د مساوات او عدل او انصاف په شعارونو ښودلی و. د ايران ټولنيزو کړکېچونو دغه غولېدنه لا هم وپاروله، تر دې پورې چې ويلی شوو له هېواد څخه کومه دفاع ونشوه او د يرغلګرو پر مخ دروازې د دننه خوا پرانيستل شوې. خو ايران ته په ننوتلو سره عربانو خپل شعارونه هېر کړل او داسې چلند يې له ايرانيانو سره پيل کړ چې په واقعيت کې د فاتح او مغلوب او د ارباب او مريي چلند و. د صحرايي عرب* دا چلند تر هغه ځايه ورسېدو، چې کله به عرب پلی و، يوه ايراني حق نه درلود چې پر خره سپور پاتې شي. بې شرمي يې تر هغه ځايه ورسېده، چې ويل يې که چېرې سپی، خنزير او ايراني د جومات له مخې تېر شي، د عرب لمونځ باطل دی!

بې فرهنګه صحرايي عرب، هغه ملت ته، چې پياوړی فرهنګ يې درلوده او له خپلو هنري مظاهرو سره يې کلکه لېوالتيا درلوده، وويل، چې موسيقي حرامه ده، شعر مکروه دی، نڅا ګناه ده، تجسمي هنرونه(انځورګري، ډېرتوړنه، مجسمه توړنه او څېره

---

* د عرب ملت په اړه د احمدشاملو دا ډول دريځ په خپله د تعصب يوه بېلګه ده. شاملو په ټوليزه توګه، بې له دې چې عرب نيواکګر له عربي ملت څخه جلا کړي، ټولو عربو ته صحرايي، دښتي او بې کلتوره وايي. شاملو په دې ښه پوهېدو چې عربي ادبيات او ان کليمې د فارسي شعر او ژبې په بډاينې کې څومره رول درلودلی دی.د دې ترڅنګ هغه د سيمې نوميالي او اسطورې يوازې ايران پورې محدودوي، چې دا په خپله نه يوازې په يو ډول د اسطورو د تاريخ تحريفول دي، بلکې د ناسيوناليستي تعصب يوه بڼه هم ده. پښتو.ژ

تورږنه مطلق کفر دي. ایرانیان له خپل ټول فرهنګ سره راپاڅېدل او د دې تحریم په وړاندې ودرېدل او جګړې ته یې ورغلل او د هماغه دین پر بنسټ یې، چې د هر ډول فرهنګ او هنر او ذوق ځلېدل یې په ناورینه توګه منع کړی وو، د تصوف غورځنګ رامنځته کړ او تر ټولو مینه ناکه ځمکنی شعر او موسیقي او نڅا یې د قول او سماع په قالب کې خانقاهو ته یووړه، ډېره ښایسته معماري یې د اسلامي معمارۍ په توګه وړاندې کړه او د دې جومات او د هغه زیارت په سر یې داسې ګنبدونه جوړ کړل چې په کې رنګ د کنګل شوې موسیقۍ او طرحونه او انځورونه یې په حقیقت کې د نڅا د ممنوعه او ځپل شوې ګرومې ښکارندویه ده. دې غورځنګ نه یوازې دا چې ایرانی فرهنګ یې وژغوره، بلکې د ایرانیانو ټول ملي او عربي ضد احساسات یې هم د سمبولیکو عنصرونو او ښو په توګه د یوې کنایې په ډول د اسلامي هنر په خورجین پورې ونښلول. د اسلامي هنرونو انځورونه له دې پلوه په رښتیا هم د مطالعې وړ دي: د ښېلګې په توګه د جقه په نامه د یوه بوټي طرحه هماغه د سبر ونه ده. هغه ونه، چې د زرتشت له دین څخه سرچینه اخلي او ایرانیانو ته یوه مقدسه ونه وه، او د تلپاتې او ابدي زرغونتیا نښه، چې بی له شکه د هغې کتارونه مو د جمشید د تخت په کیندنې کې لیدلې دي. د اسلیمي د مشهورې طرحې قوسونه او دایرې هم که له ما وپوښتئ هماغه انار، زرتشتي مقدسه میوه ده، چې سټایلیزه شوی او ګل یې د اور لمبو ته پاتې کیږي، چې اتشکدې یاد ته راوړي او سر یې هم کیاني تاج ته ورته والی لري.

## پریبږدئ چې یو تریخ حقیقت درته ووایم

دا پېچلی سیستم، چې زموږ ماغزه دي که څه «زده نه کړي»، که«زده یې نه کړي او تمرین یې نکړي»، په دوو پیسو هم نه ارزي. که انسان له لېوانو سره په یوه ځنګل کې لوی شي، نه یې ماغزه ورسره مرسته کولای شي او نه خپل ناطق ځواك کشفولی شي. د نړۍ له نورو هېوادونو سره څه کار نه لرم، خو زموږ په خپل ایران کې ولسي پرګنو د خپل تاریخ په اوږدو کې د تعقل شونتیا، د تفکر شونتیا، د هغه شي د کارولو شونتیا، چې ماغزه ورته وایي، نه لرله. البته دا چې د یوه ولس په تاریخ کې د خوارزمي او خیام او حافظ او بیروني او ابن سینا په شان نوابغ راڅرګندېږي، بله مسئله ده. لمړی دا چې خوارزمي او خیام او د دوې په څېر کسانو نشو کولای ټولنیز انقلاب طرح کړي او یا یې پر مخ بوزي او  پوهه یې هم داسې څه نه وو، چې د ولس په کار راشي، او همداسې ښه وه! کله چې د حافظ په شان یوه لویه هستي، چې زما په اند په ټولو مهالونو کې د ټولو ژبو او د ټولو شاعرانو سرتاج دی، د ولس لاس ته ورغی، برخلیک به یې، پرته له دې چې په دیوان یې فال وګوري، څه کېدای شوای ؟

زه نه وایم چې د ملت پرګني مو قاصر یا مقصر دي، خو تاریخ مو ښودلی چې دا ولس تاریخي حافظه نه لري، ډله ایزه حافظه نه لري، هیڅکله یې له خپلو ټولنیزو عیني تجربو څخه څه زده کړي نه دي او هیڅکله یې ورڅخه ګټه اخیستې نه ده او په پایله کې هر چېرې چې چاره یې هڅوکې ته  رسېدلی، په څنګ اوښتی، له یوه ابتذال څخه بل ابتذال ته او د خپلې غولېدنې لپاره یې دا عرضي حرکت یې پرمختګ ګڼلی. زه د انقلاب کارپوه نه یم، خو هیڅکله له خپلسري انقلاب څخه مې تمه درلودلی نه ده. خپلسری انقلاب هغه بې قوماندانه پوځ ته ورته دی، چې ډېر د ماتې او دښمن ته د نیواک د موکې ورکولو په درد لګېږي، نه د دښمن د ماتې او نابودۍ لپاره. کوم ولس چې تاریخي حافظه نلري، انقلاب یې که هرڅومره له مقطعي پلوه «پرتمین» توصیف شي، پایله بې هغه څه ده چې وویل شول، یعنې پایله یې ارتجاعي ده، یعنې

نوښتگرانه کړنه به تر سره نکړي. ولس د زرتشتي مُغانو او روحانیانو د بلوسگرۍ په وړاندې، چې دوی یې په کرغیړنه ډول ربړول، د عربانو دوکه خوري او دروازې یې پر مخ پرانیزي. دوه سوه کاله وروسته، کله چې د عربانو له فشار څخه پوزې ته راځي او د تصوف غورځنگ رامنځته کوي، بیا یې غوا کونجاړه په خوب کېویني او هغه زرتشتي عناصر یې چې په ډېر تاوتریخوالی سره لېرې اچولي دي رامخې ته کوي او د عربانو د ځورولو لپاره له کیاني تاج سره د انار د گل له ورته والي څخه د اسلیمي طرحه پنځوي؛ هنر یې مخ په وړاندې ځي، خو ټولنه عملاً شاته درومي. شاه اسماعیل د سیاسي لاملونو له کلبه لاس په کار کیږي، چې مملکت شیعه کړي(که داسې وانگېرو چې دا کار له سیاسي پلوه ډېر ښه و، ځکه چې هېواد له پاشلو ژغوري) خو دا کار په ډېره لوېه بیه تمامیږي: په ایران کې د پوهې، هنر او فرهنگ د لاسه ورکولو په بیه او همدا ډول د هغو نژدې نیم میلیونو انسانانو د مړینې په بیه، چې چمتو نه دي له سُنیتوب څخه لاس په سر شي او بل مذهب ومني او په خپل اذان کې علي ولي الله ووایي. خو همدا ولس چې د تورې له ویرې شیعه گان شول یا یې په شیعه توب تظاهر وکړ، څو موده وروسته په بشپړه توگه دا موضوع هېروي او د تاریخي حافظې ځای یې داسې تعصب نیسي، چې بیا راشه او ننداره یې وکړه! ان دا مني که پینځه سنیان ووژني سیده جنت ته ځي. خپل پاچا، چې په ورته وخت کې مذهبي ریاست هم لري او پر ځان یې د علي د درشل د سپي لقب ایښی، د گردو مرشد بولي او په رکاب کې یې د دین د لوړولو لپاره توره وهي او نړۍ نیسي، په داسې حال کې چې د گردو مرشد شپې او ورځې د شرابو په څښلو تېرېږي او د بل هېواد د پاچا د شرعي ښځې لاسته راوړلو لپاره هېواد یې تالا والا کوي!

خپلې موضوع ته راستانه شوو:

لنډه دا چې انځورگرۍ، نڅا او موسیقۍ او شعر یوځای شول او کټ مټ د اسلامي مرکزونو له زړونو، د خانقاه گانو له مینځه په خوځښت راغلل او د دې په ښکلا سمبال فرهنگ کوکاره ان ظاهراً د مسلمانو خلفاو په مانیو کې هم انگازې جوړې کړې. تر

دې ځايه پورې د مقاومت او مبارزې مشري د ازاد اندو او متفکرينو په لاس کې وه او د خلفاو د دربار د کلکې او سختې صوفي وژنې او د سرغړونکو صوفيانو له محوه کولو سره سره، تصوف تر هغه ځايه اغېزه وکړه، چې خانقاوې عملاً د مذهب په اصلي مرکزونو بدلې شوې.

له بده مرغه د وخت د کموالي له امله نشم کولای روښانه کړم، چې عربي اسلام څه و او هغه اسلام چې ايراني تصوف ورځخه جوړ کړ، څه ډول و؛ خو کولای شم يو لنډ ټکی د صوفيه مشرانو د يوه مشر له باورونو څخه رانکل کړم، چې موټی د خروار بېلګه ده:

> «صوفيان په خانقاه کې سره راټول شوي وو، چې بهر د اذان غږ پورته شو: «الله اکبر» (خدای لوی دی). يو شيخ سر وخوځاوه او ويې ويل: و اَنَا اکبرٌ مِنهٌ (زه تر خدای لوی يم!)».

د تصوف کار کوم ځای ته ورسېده؟ هېڅ! وروسته له هغې چې تصوف خپل ټولنيز سياسي رول تر سره کړ، د ايران پاچاهانو هغه له فرهنګي او ملي منځپانګې څخه تش او د لټۍ او مفتخورۍ او درويش مسلکۍ په بڼه يې واړاوه او ورڅخه يې يو خوشې شی جوړ کړ چې دوی وکړای شي بې له مزاحمته د عربو خلفاوو د دربار په نوکرۍ او مزدورۍ وویاړي او د هېوادپالو او خپلواک پلوو وينه تويه کړي.

البته دا نخوړ او لنډه طرحه وه، چې وړاندې مې کړه او کېدای شي ځيني اخځونه مې ناسم وي. دا طرحه مې د دې لپاره وړکړه چې ښکاره کړم، هغه ستر غورځنګ څه و او څه ترې جوړ شول. خو وروسته چې مغرضو مزد قلمه مورخانو د ورځې د سياست د اړتياوو له مخې وويل چې تصوف د هماغه پيله له مفتخورۍ او درويزګرۍ او درويش مسلکۍ پرته بل څه نه و، موږ هم دا حکم د يوې نازل شوې وحې په توګه ومانه.

که  چا ویلي، چې قاتل، دوکه مار او اپورتونیست انوشیروان د عدل او انصاف نښه ده، موږ دا حکم هم د نازل شوې وحیې په توګه منلې او که فردوسي تېروتنه کړې یا یې له تګی کار اخیستی او د ضحاك اسطوره یې په بله بڼې اړولې، ان زموږ تحصیل‌کړی او حقیقت پاله پوړ هم دا حکم د نازل شوې وحیې په توګه منلی ده.
ما د تصوف د غورځنګ او د ضحاك د اسطورې په اړه د ناسم قضاوت موضوع د دوو تاریخي بېلګو په توګه مطرح کړه، چې تاسو ښاغلیو دوستانو ته ووایم چې حقیقت څومره زیانمن کېدونکی دی. دا بېلګې مې راوړلې، چې هوښیار ووسئ، چې څومره ارموني زموږ د قضاوت او اخځونو د لارې په سر ناست دي، چې کولای شي په یوه جادو سره ورګه شړومبې او تور سپین ښکاره کړي او رنګ شوی پیل مرغ د کوهیل پر ځای پر موږ تېر کړي. دا بېلګې مې ځکه راوړلې، لکه څنګه مې چې د خپلو خبرو په سر کې وویل، د خپلو اندېښنو د شریکولو لپاره زمینه برابره کړم، هغه ربړونکې اندېښنې چې د سبا، د راتلونکې په اړه مې له اوسه اروا توږي او پر هډوکو مې اره تیروي.اوس مې چې دا زمینه برابره کړې نو کولای شم ووایم، که د پولې دننه د تعصبي شرایطو له امله د ټولنې روڼاندو ته د انساني او ټولنیز رسالت لپاره د عمل کوچنۍ شونتیا نشته، له تاسو چې د ټولنې تحصیل کړی او پوه پوړ یاست او دا نیکمرغي مو هم لرلې، چې څه موده له اختناق څخه لېرې ځان وروزئ  په هېڅ ډول د منلو وړ نه ده، چې هر حکم او هر ایزم یوه نازل شوې وحې وګڼئ او بې له فکر او ارزونې هر له وړاندې جوړ شوی حکم ومنئ. تاسو دا شونتیا لرئ چې څه موده د آزاد اندی له نعمت څخه برخمن ووسئ، نو له دې شونتیا څخه تر هغه ځای پورې چې کولای شئ ګټه واخلئ. که د ایران د پوهنتونونو له یوه محصل څخه دا خبره د منلو وړ وي، چې په ناسازه شرایطو کې د هر ډول حکم منلو ته، چې په ظاهره پاک او سُتره ښکاري، اړ دی او د دې حکمونو د معیوبتیا د اټکلولو لپاره کومه وزله په لاس کې نه لري، خو د تاسې له هېڅ یوه څخه داسې یوه خبره د منلو وړ نه ده.

تاسو ته د بحث او د فکري کشالې موکه برابره ده. تاسو دې بحثونو، کشالو او فکري راکړې ورکړې ته اړتیا لرئ، دنده مو ده، ناچار یاست، ځکه چې زموږ سبانی ژوند له هغې سره تړاو لري. ځکه که ته سبا بیا تېروتنه وکړې، زما شتون او روغتیا په خطر کې اچوې، که زه په ناسمې لاړ شم، تا هم له ځان سره ناسمې ته بیایم.د لږو پوهېدلو خطر د نه پوهېدلو له خطره ډېر دی. زموږ پخوانیو رښتیا ویلي دي:«نیمچه حکیم د ځان بلا، نیمچه مُلا د ایمان بلا». د ولس ناپوهي په خپله یو بالقوه خطر دی، ځکه په ناڅاپي ډول راپاریږي او پرته له فکره او پرته له موخې په عمل لاس پورې کوي؛ خو که ته سم فکر ونکړی، دا بالقوه خطر په یو ناورین بدلیږي.
تاسې هره شېبه باید ځان محاکمه کړئ، چې آیا واقعاً هغه څه چې وایم او کوم، سم دي؟ آیا کولای شم بې له هېڅ اندېښنې او وېرې ادعا وکړم، چې که له خپل انساني شرافت څخه وغواړم، چې زما د اندونو او اخځونو د سموالي ضامن شي، پرته له یوې شېبې شکه به دا ضمانت ومني؟ تاسو حق نه لرئ چې لږ پوه شئ، حق نه لرئ وښوییږئ، حق نه لرئ تېروتنه وکړئ، ځکه یوازې لیوني کولای شي خپل خیالونه نړه حقیقت وګڼي او د تېروتنې له شونتیا یې چرت هم خراب نشي.
خپله وروستۍ خبره به وکړم: تاسو حق نه لرئ پر هېڅ حکم او آیت باندې ، چې له پخوا څخه موږ ته رارسېدلی او په پټو سترګو مو منلی، ایمان ولرئ. له مطالعې پرته ایمان د بشر د پرمختګ د لارې خنډ دی. یوازې دروغ او ټګېیل له خپلو اتباعو څخه د مطلق ایمان غوښتنه لري او هغوی ته تلقینوي که شك وکړئ نو مخ توري به شئ؛ ځکه دا یوازې او یوازې شك دی چې انسان حقیقت ته رسوي. ژمن حقیقتپاله انسان هېڅ دګم، هېڅ فرمول، هېڅ آیت نه مني، مګر دا چې لومړی پکې تعقل وکړي، د منطق او عقل په اډانه کې وتلي او هغه وخت پرې باوري شي، چې حقانیت یې په پیاوړي علمي او منطقي دلایلو سره ومومي. کله چې دیالکتیکي منطق زه قانع کړی یم، چې د دوو سیندونو اوبه ما په یوه کچه لمدولی نشي، نو زه حق لرم په تاریخي تجربو هم شك وکړم؛ مګر دا چې د یوې تاریخي تجربې د بریا شرایط زما د ټولنې له

شرایطو سره د سر ویښته په اندازه هم فرق ونکړي. بې‌له شکه د دوو ټکو تر مینځ تر ټولو لنډ واټن مستقیمه کرښه ده. خو په هندسه کې یې موږ ته ویلې، چې همدا له لمر څخه روښانه موضوع هم، که په علمي توګه ثابت نشي، د پاملرنې وړ نه ده، خو موږ سره له دې په هغو بابېزو ایمان راوړو، چې یوځل ورته د عقل په سترګه په ځغلنده هم وګورو، نو پر خپل شوده توب به وخاندو.

د نړۍ شته ادیانو ته یوه ځغلنده کتنه وکړئ:

دیني او مذهبي ایمان او اعتقاد، له بت پرستۍ څخه د موسی او بودیزم او زرتشتي او مسیحت او څه څه پورې، معمولاً د یوې سرتړلې صندوقچې په توګه په ارثي ډول له والدینو څخه اولادونو ته لېږدول کېږي. یقین ته په نژدې احتمال موږ ټول چې د دې چت تر لاندې راټول شوي یوو، که مذهبي ګروهه ولرو، نو په هغه مذهب یوو، چې مور او پلار مو درلودلی دی. البته دلته خبره د مذهب ده نه د دین. دین اصلي او لومړنی تنه ده. د تاریخ په بېلابېلو مهالونو کې دین په بېلابېلو دلیلونو انشعاب کړی او مذهبونه له هغه د څانګو په شان رازرغونېږي او لاره بېلوي. ګواکی د اسلام دین څو اویا څانګې یا مذهبونه لرل، چې نن نژدې یو سلو دیرشو او یوسلو څلویښتو ته رسېدلي دي. طبیعي ده، چې هر مذهب ځان ته د روحانیت یوه ټولنه هم لري. د هر مذهب د روحانیت د ټولنې وګړي هم بې له شکه باور لري، چې یوازې د دوی مذهب په حقه دی او د نورو  مذهبونو او ادیانو پیروان کافران او ګناهکاران دي. دا هم قبلوو، ځکه چې که دا باور ونلري، نو باید بل مذهب ځان ته غوره کړي.

راځئ د یوی شېبې لپاره شته مذهبونه د هغوې د کفر او دین د دعوا سره، په ځمکې پربېږدو او په خپله اوچت ځو او له بهر څخه، له پورته نه ورته پام کوو:

مسیحي (له کاتولیك او پروتستان او انجیلي او کواکر او ګریکوري او ارتودوکس سره یې کار نلرو، ځکه دا ټول د کورنیو جګړو مقولې دي)، مسلمان (د سني او شیعه او حنفي او حنبلي او د اسلام له نورو مذهبونو سره هم کار نلرو)، بودایي (له شینتو او کنفسیوسي او دائویي سره یې هم کار نلرو)، برهمني، زرتشتي، مهري، مانوي،

بت‌پرست، لمرپرست، اورپرست، شیطان‌پرست، غواپرست، یهودي او... ټول په دې باور دي، چې یوازې زما مذهب په حقه دی.
ښه، موږ چې پورته تللي یوو له بره یې گورو، نو یوه پوښتنه راپیدا کیږي:
دا ټول خو برحقه کېدای نشي. عقل حکم کوي، چې له دې ټولو یوازې یو په حقه کېدای شي. زما موخه البته یوازې د یوې بېلگې وړاندې کول دي، نه شخړه جوړول، زه په داسې مقام کې نه یم چې د دې یا هغه مذهب د حق او ناحق حکم یا د نه منلو حکم وکړم. خو زه یوازې د هغه بودایي کاهن په ادعا، چې بودیزم په حقه گڼي امکان نلري په بودیزم ایمان راوړم. ولې؟ یوازې په دې اسانه دلیل، چې هغه خپل مذهب د نورو مذهبونو تر څېړلو وروسته نه دی ټاکلی، بلکې ورته په میراث رسېدلی او د منطق او انتخاب له حقه پرته یې منلی، نو د خپلې ادعا د سموالي لپاره څه نلري. بودایي توب یې په میراث وړی او د همدې لپاره په سستۍ سره وایي چې بودایي دین په حقه دی؛ که چېرې د یوه بت پرست په کورنۍ کې زېږېدلی وای او بت پرستي یې په میراث وړې وای، نو ویل به یې، چې بت پرستي په حقه ده. ان که یوه شېبه ومنو چې په رښتیا هم بودیزم په حقه دین دی، بیا هم د دې ښاغلي خبرې اپلتې دي.
باشعوره انسان یوازې په هغه څه باور پیدا کوي، چې په خپله یې په منطقي تجربې تر لاسه کړی وي. په عیني، علمي، عملي، قیاسي، فلسفي او د ټولو زماني او مکاني شرایطو په دخالت سره یې تر لاسه کړی وي.
انسان یو منطقي اندیال موجود دی او ناچاره هومره مغرور باید واوسي چې بسته بندي شوي احکام د خپل مستقیم تعقل له دخالت  پرته ونه مني. د احکامو منل او پر هغو تعصب ښودل انساني شرف ته سپکاوی دی. له بده مرغه باید ومنو چې موږ ډېر شیان یوازې د دې لپاره منلي، چې  یوه شېبه هم هغوی ته له بهره ، له بره پام نه دی کړی.
عقیدیتي جگړې او کشالې یوازې پر دې پیلیږي، چې د دعوا یو اړخ هم حقیقت ته د رسېدلو غوښتونکی نه دی او یوازې غواړي خپله ضعیفه گروهه پر نورو ومني او دا ډول جگړې او مرافعې د همدې لپاره سپکې او بې ارزښتې او بې اعتبارې او زرگري او تر

سپکاوي ډکې او پای یې نهیلي ده. له یوه خپلوان سره په ټلیفون کې خبرې کوم. راته وایي چې د سهار اته بجې دي، زه وایم د شپې اته بجې دي، دواړه رښتیا وایو. خو لانجه مو کیږي، ځکه چې یو بل په دروغو تورنوو. هغه له کړکۍ بهر ګوري او پر ما چیغه وهي: سره له دې لمره ، چې ځلیږي، څنګه ځان ته اجازه ورکوې چې پر ما ملنډې ووهې او دومره بې خونده درواغ ووایې؟

زه هم له کړکۍ څخه بهر ته ګورم او ورباندې چیغه وهم: یا للعجبه! دې حرامچکي ته وګوره، چې څنګه په ما ملنډې وهي!

او حیدري نعمتی*جګړه پیلیږي، په داسې حال کې چې یو هم دروغجن نه یو؛ یوازې لنډاکه یوو او د یو بل په شرایطو نه پوهېږو، پوهه او زیرکي نه لرو او په خپلو سطحي اخځونو او استنتاجونو کې مهالني او ځایي شرایط په پام کې نه نیسو.

دا د انسان مقام ته سپکاوی نه دی، چې دا حیرانونکی شی، دا د مغزو په نامه وسیله او فکري سیستم، چې په دې ځمکه کې یوازې او یوازې د انسان په واک کې دی، خو بیا هم د هغو غالباً ناروغ ډوله احکامو تر شا لکه پسونه روان وي او دا ښکلې غرور پنځونکی اندیزه بې ګټې پرېږدي او یوه خوشې وزله ترې جوړوي؟

---

* حیدري ـ نعمتي د دوو تصوفي فرقو نومونه دی. نعمتي ډله، د شاه نعمت الله ولی پیروان وو او حیدري ډله بیا د سلطان قطب الدین حیدر توني مریدان وو، چې دواړو فرقو له صفویي وخته شتون درلود. حیدري ـ نعمتی جګړې هغه جګړو ته ویل کیږي چې منطقي بنسټ نلری او د خلکو پر تعصبونو ودریدلی وي. داسې ویل کیږي چې حیدري - نعمتي جګړې هم د شیعه او سني مذهبونو پر اساس کېدلی. پښتو.ژ

# خبره رالنډه کړم

د ټولنې پر ولسونو کوم اعتراض نشته، که دا ډول یا هغه ډول فکر وکړي یا داسې و هغسې عمل وکړي، خو پر هغه پوړ، چې د ځان او د ټولنې د برخلیك په اړه اندېښنمن دي، د اندیاله مغزو پر څښتنانو اعتراض کیږي. پر هغه له آزادۍ څخه محروم محصل، چې د بحث او پلټنې شونتیا نه ورکول کېږي، اعتراض نشته، خو پر تاسې چې د پلټنې او مباحثې او د فکري راکړې درکړې له امکاناتو برخمن یاست، اعتراض شته، په ځانګړي توګه چې څنډې ته ځانونه نه کاږئ او نه وایاست، چې پر ما یې څه، هڅانده یاست او مسوولیت منئ. نو پر تاسو ده، چې د هغې ټولنې پر ځای، چې د منطقي تفکر شونتیا ترې اخیستل شوی، په جدي توګه منطقي فکر وکړئ.

ښه، زما اندیښمنوونکې پوښتنه دا ده:

- تاسو ځوانان چې شریف خلك یاست، له ځانګړې ختې یاست، په شهرت او پیسو پسې نه ګرځئ، یوازې د ټولنې ګټه او روغتیا غواړئ او د عقیدې لپاره له سره تېر یاست، څه کوئ؟ څه کړنلاره لرئ؟ څه غواړئ وکړئ؟

زما دې دردجنې پوښتنې ته لا چا ځواب نه دی ویلی، تاسې خپل ځان ته څه ځواب وایاست؟ که زړګی مو نه ماتېږي، زه به یې درته ووایم. ګمان کوم ځواب به دا وي چې:

- چې سبا شي، د سبا فکر به کوو!

درته یوازې خواشینې یم!

له دې پوښتنې تېرېږم او یوه بله پوښتنه، لانرمه پوښتنه کوم:

- سبا ته څه باید وکړئ؟ له ځانه مو داسې یو څه جوړ کړي، چې سبا ته په کار راشئ؟ ځان ته مو په انتقادي نظر کتلي دي، چې وګورئ فرهنګي بنسټ جوړونه مو په څه حال کې ده؟

زموږ د ولس يو شمېر زيات بچيان، چې له هېواد څخه بهر زده کړې کوي، له ايران نه د وتلو پر مهال په دوو بشپړو څرګندو دلايلو روغ فکري بېخ بنسټ نه لري. لومړی په دې دليل، چې اصولاً په هغه عمر کې نه دي، چې فرهنګي مسائل او ملي هويت ورته اهميت درلودلی وي يا زموږ د هېواد د ټولنيزو شرايطو په اړه يې لازمه پوهه تر لاسه کړې وي او دويم په دې دليل، که چېرې دې چارو ته يې پام هم کړی وي، د هېواد سياسي فضا هغه فضا نه وه، چې په آزاده توګه توانېدلی وي د دې موضوعاتو په اړه فکر او پلټنه وکړي.يو دا چې دې ډول ګټورو څېړنو او پلټنو لپاره سرچينو ته د لاسرسي شونتيا نشته، بل دا چې کومې احصائيې او معلومات چې لاسرسی ته اېښودل کېږي، د اعتماد وړ نه دي.

د يوې وينا له مخې درواغ پر درې ډوله دي: کوچنی، لوی او احصائيې. ان زموږ ټولنپوهان د ټولنې د حقايقو په اړه سمه پوهه نه لري. - ډېره طبيعي ده چې زموږ ډېری ځوانان له هېواد نه د وتلو پر مهال هغې تنکۍ لښتې ته ورته وي، چې له ونې يې غوڅې کړي او هيڅ ريښه له ځان سره ونلري. که زما په عمر او منګ، يو کس جلا وطنۍ ته اړ شي، په هر حال له ځان سره ريښې راوړي، خو يو ځوان محصل د يوې قلمې په شان دی؛ هغه تانده نيالګی دی چې تازه يې له ونې پرې او په دې پردۍ خاوره کې يې ښخ کړی نو کومې ريښې چې نيسي، ناچاره له همدې اوبو او خاورې يې نيسي. دا منم چې ريښې نيسي، خو په هغه خاوره کې، چې د ده نه ده، سبا چې وطن ته ستون شي، له ځان سره هغه ريښې وړي چې بدلې دي، زموږ له فرهنګي جغرافيې سره پردۍ دي او ورسره نه جوړېږي.

د زړه له کومې هيله من يم چې په دې قضاوت کې يو سلو اتيا درجې تېروتلی وی، خو تر هغه ځايه چې له هېواد څخه بهر د محصلينو له ټولنو سره مې اړيکې لرلي او په سترګو مې ليدلي دي، په هغوی کې مې د دې خورا ډېرې حساسې مسئلې په اړه هيڅ ډول اندېښنه ليدلې نه ده.

ډېر داسې دوستان مې ليدلي، چې ظاهراً ايراني چاپېريال لري، البته د هغوی په گمان. يعنې د سبو قورمه خوري، له ډولگي سره د روحوضي* سندرې وايي، پر ډيسکو نڅاگانو د بابا کرم** نڅا غوره گڼي؛ که مذهبي عقيده ولري، لمونځ کوي او روژه نيسي؛ د غوښې د حلالتيا په اړه ډېر حساس دي او يو شمېر يې هم د غوښې خوړل بېخي پرېږدي او که پړونی نشي په سر کولی، له چادرنماز سره گوزاره کوي. له خپلې خوانېې، اوښې، خينې او ورندار سره تر يوه چت لاندې ژوند کوي او په دې غلط گمان دي، چې پر ځمکې د خپل دسترخوان په هوارولو سره يې گنې خپل ملي فرهنگ ساتلی او ايراني پاتې شوي دي. عادت له فرهنگ سره غلطوي او ځان غولوي، ځکه دا يې هېر کړي، چې نازبين يې ان خپله مورنۍ ژبه هېره کړې او له پارسي څخه يې يوازې د «پدرسوخته»*** کلمه زده کړې ، چې په مانا يې هم نه

---

* روحوضي ته چې تخت حوضي هم وايي، د ايران يو ډول کميکه نندارہ ده چې له نڅا او موسيقي سره مل وي. په تېر وخت کې د ايران د ځينو غټو کورونو په انگړونو کې به يې حوض جوړلو، چې په ځينو ميلمستياوو او جشنونو کې به يې وربانديې پلاز اينښودو او پر هغه به يې کميکي نندارې تر سره کېدلی. پښتو.ژ

** د بابا کرم نڅا د ريښې په اړه که څه هم دقيقې سرچينې نشته، خو داسې ويل کيږي چې بابا کرم يو قصاب و چې کله به له کوڅې تېرېده نو د کوڅې ښوزلو او يتيمو ماشومانو ته به يې په لاره کې نبات ورکوو او د هغو د خوشاله کولو لپاره به يې د نڅا په ډول خپل سر او ورمېږ او لاسونه خوځول. ماشومانو به هغه ته بابا کرم ويل.د وخت په تېرېدو سره په دې نڅا کې بدلونونه راغلي او د ايران د يوې دوديزې نڅا په توگه شمېرل کيږي.پښتو.ژ

***پدرسوخته په عاميانه اصطلاح کې خبيث او بدذات ته ويل کيږي. يو له نقلونو څخه، چې البته تاييدول يې سرچينو ته اړتيا لري، دا دی چې د د دې اصطلاح ريښه صفوي پېر ته ستنيږي. په صفوي پېر کې ډېر شمېر کسان يې په اور کې ژوندي سيزل.حسن کيا او مراد بيک په شان کسان يې د شاه اسماعيل په دستور ژوندی ژوندی په اور کې وريت کړل. د دې تر څنگ ان د ابونعيم اصفهاني قبر او

پوهېږي او که په امريکايي ګړدود يې تلفظ کړي نو تشي به دې ورته له خندا په درد شي!

ما په خواشينۍ سره ډېر نرۍ لېدلي زده کړيالان ليدلي، چې د خپل هېواد د سبا په اړه هډو اندېښنه نه لري. ډېر زده کړيالان مې ليدلي دي که سبا وطن ته ستانه شي، يو پردی به وي، لکه يو بهرنی مشاور؛ بې له دې چې، له خپل ايراني فرهنګ سره کومه آشنايي ولري؛ پرته له دې، چې له خپل تاريخ، له خپلو ادبياتو، له خپل هنر سره کومه آشنايي ولري. يو اړخيزه او نه پنځوونکی موجود به وي، چې په غوره حالت کې يې يو ماشين ګڼلی شو او بس. دلته يې چې وطن نه دی، هم پردی دی؛ هلته يې چې وطن دی، هم پردی دی.

په دې يا هغې رشتې کې د تخصص درجې ته رسېدل په هېڅ ډول د فرهنګ خاوند کېدو او د فرهنګي هويت موندلو په مانا نه ده او هغه ځورونکې پوښتنه چې تل راته پيدا کېږي دا ده، چې سبا به زموږ هېواد دې هر يو تحصيل کړي ته اړتيا ولري، خو دا ځوانان چې هېواد ته ستانه شي، يوازې د دوې د ليسانس او دکتورا او له دکتورا پورته يا په دې او هغې علمې رشتې کې ديپلوم لرل به زموږ د ټولو اړتياوو د پوره کولو لپاره بس وي؟

د خپلو خبرو پای ته رسېدلی يم، په ډېر ګړېدل مې تاسې ټول ستومانه کړی ياست، خو دوستانو پرېږدئ چې يو ځل بيا هغه مطلب ته راستون شم، چې تر دې مخکې مې وويل:

انسان چې له يو مختنق چاپېريال څخه راخوشې کېږي، لومړنی احساس چې د فکر او ګروهې له آزادۍ څخه لاسته راوړي، هغه يې راپاروي او دا ډېره طبيعي خبره ده. د دې احساس، چې انسان کولای شي د عقايدو د تفتيش د شبکې د مامورينو د څارلو

---

په تبريز کې د يعقوب پاچا قبر يې وسپېړل او هډوکو ته يې اور وراوچو. نو ويل کيږی چې د همدې لپاره په فارسي کې دا معمول شوه چې:«پدرت را درميارم پدرسوخته...» پښتو.ژ

له وېرې پرته په اعتماد او خپلواکۍ او په بشپړه واك د ځان لپاره ګروهه او فكر وټاكي، ډېر ښادي بخښوونکی دی. خو دا احساس کېدای شي کله د خوښدلو لامل وګرځي. دا احساس کله د دې لامل ګرځي چې، موږ بې له فکره او تعقله هغه ګروهه مو چې لمړی مخې ته راځي ومنو، یانې په مطلقه او مجرده توګه، بې‌له دې چې فکر وکړو دا عقیده د ایران په اقلیمي او فرهنګي شرایطو کې د کارولو وړتیا لري که نه. زه باید دا احتمال ومنم، چې پلانۍ یا بستانۍ ګروهه چې ما په بشپړه ښه نیت، خو په پټو سترګو منلې ده، نه ښایي چې په اړه یې وچ لنډپاریتوب ښکاره کړم. دا احتمال باید ومنم، چې شاید نورو کسانو هم لکه ما په ورته شرایطو کې عقیدې پیدا کړې وي، نو عاقلانه نه ده چې له هغوسره دښمني او شخړه پیل کړم، ځکه چې د دې تعصب ښودنې او د سرتمبه توب پایله په بېلابېلو څانګو له وېشنې بل څه نه دي، له تجزیه کېدلو، کوچنۍ کېدلو، جلا کېدلو، زیانمن کېدلو، د خورو ورو کمزورو هستو جوړولو او له واقعیتونو څخه لېرې کېدلو پرته، بل څه نه دي.
«هغوې چې دوستان نه دي، دښمنان دي»، هغه احمقانه شعار و، چې د پورته کوونکو سرونه یې هم وخوړل، موږ حق نه لرو داسې یو فکري لیددود ولرو. موږ حق نلرو خپلې تیوریګانې دګمی کړو، د خپلو سیاسي کتابونو په آیتونو مذهبي ایمان راوړو او جاهلانه تعصب ولرو. دا په موږ فرض ده، هغه څه چې سم انګېرو په یو بشپړ دموکراتیك چاپېریال کې، له شرمناکه قشري تعصب څخه په آزاده فضا کې، په یوې تعقلي فضا کې، چې یوازې عقل او منطق او استدلال د درناوۍ وړ وي؛ له نورو شیانو سره، چې نورو سم انګېرلي، پرتله کړو، که چېرې موږ تېروتلي وو، نور به زموږ د لارې څراغ شي او که نور په خطا ځي، موږ به یې د خوښدو مخه ونیسو.
موږ له بې شمېره اړخونو، د فکري راکړې ورکړې او د متقابلې هوکړې لپاره داسې یو آزاد چاپېریال ته اړتیا لرو چې:
۱ـ هېڅوك ادعا کولای نشي، چې زه سم فکر کوم او نور په غلطه دي. یوازې ځان په حقه ګڼل، سوچه بېړا توب دی.

۲ـ که د یو اند د حقانیت او روغتیا شونتیا لیدل کیږي، باید تبلیغ شي. د داسې اند منفردول او ځنډې ته شړل بې له شکه جنایت دی.

۳ـ باید ټول هڅه وکړو چې منطقي واوسو او دا ځانګړنه یوازې د نورو عقیدو له خلکو سره د خبرو اترو او د بحث له لارې لاسته راتلی شي.

۴ـ دګماتیکي ګروهې، چې د انسان په باور کې لکه ډبرې سختې شوې، یوازې د فکرونو د تبادلې او د اندونو د تقاطع له لارې کېدای شي لېرې وغورځول شي. ځوك چې له نورو سره له فکري تقابل څخه ډډه کوي، لنډپاری دی او لنډپاریتوب له جهالت او ناپوهۍ پرته بل مفهوم نه لري.

۵ـ حقیقت یوازې د اندونو په دموکراتیك اصطکاك سره راڅرګندېږي او موږ باید داسې کسان واوسو، چې له حقیقت پرته بل څه ته سر ټیټ نه کړو. بل څه، چې حقیقي او منطقي نه وي سپېڅلی ونه ګڼو، ان که له اسمان څخه رالېږل شوی وي.

د ځواکونو د یو موټي پاتې کېدو لپاره به زموږ هېواد سبا د دې ډول روحیاتو لرونکو کسانو ته اړتیا ولري.

نو زما پوښتنه دا ده:

ـ آیا د هېواد راتلونکې لپاره له ځانه مو یو ګټور کس جوړوئ؟

دا هغه پوښتنه ده، چې ځواب یې باید یوازې تاسې په خپله قانع کړي.

مننــدوی یم.



په دربمې نړۍ کې د رژیمونو سیاست ارتجاعي او استثماري دی. هر رژیم له خپلو تبلیغاتي وسیلو سره له یوې خوا یوازې هغه څه چې خپله یې غواړي او یا ورته ګټور دی، تبلیغوي او له بلې خوا په سانسور او تراره سره د هغه اند او فکر د خپرولو مخه نیسي، چې له خپل ګټندویه سیاست سره یې په تضاد کېویني.

